۱۳۴۰
۹

# کندهار

12/1961



د سالنګ په لوېدیځه برخه کې د قیر شوي سړک پر غاړه د خنجان ښایسته ودانۍ

# د ستروپښتنو پاچهانو او نامتو شخصیتو ویناوې

تول پښتانه یوشان دی زما په دربار کې د قبیلو ذکر مه کوئ . [سوري شیرشاه]



د بې زړه سره مشوره کول کټ مټ بې زړه توب دی . [میرویس خان]



د پښتون د توري برېښنا ده چې د دښمن سترګې ور ړندوي . [شاه محمود]



د زړه ګل بلهمي له خاورو څخه هلته سر راپورته کي چې د خپل هیواد د غرو شمال ځنې وهو ښلي .
[دلوی احمدشاه بابا د یوه شعر مضمون]

زما د همت په نظر تول جهان لکه د پرکار کوچنۍ دائره داسې ایسي . [تیمورشاه]



هرچیرې چې ئې د خدای یاد د پلچا به تعلق مه مه پروه . [سردار مهردل خان مشرقي]



پښتون ولس د زړه قوت، عزت نفس او لوړ مزاج ودې ته واداره کړی دی چې د پردو تر سلطې د شرف و مرګ ته ترجیح ورکي .
[سید جمال الدین]



زما نصیحت همېشه دادی چې پښتون دې یو خپل کور جوړ کي . [خان عبدالغفار خان]

## ددې ګڼې مضامین

مسئول چلوونکی
ا، م «گرزی»
اداره د شهیدانو واټ
[د دولتي مطبعې څنګ ته]

# کندهار

میاشتنی خپرونه
ادبی. تاریخی. اجتماعی. علمی

کالنی «بیه»
په کندهار کښې [۳۸] افغانۍ
په دننه مملکت کښې [۳۲] «
په د باندنیو هیوادو کې یو پاؤ

ګڼه [۹] لمریز کال ۱۳۴۰ د قوس [۱] د میلادي کال ۱۹۶۱ د نومبر [۲۲] پرله پسې ګڼه [۳۱]



## د ټولنو تحول

تحول یا له یوه حال څخه و بل حال ته اوښتل د طبیعت یو له هغو نېدو نکو دستورو څخه دی چه په کارګاه کښې دهر شي بڼه بدلیږي او د کاینا تو په ټولو مظاهرو کښې څرګند تحولونه راځي. د جهان په ننداریو کښې هر کله د لویو ننداره سره اوړي او د تصویر بېل اړخونه په جلا ډول کښې ځان ښکاره کوي.

داځکه چې په جهان کښې حرکت موجود دی او د حرکت سره بدلون هم ملګری دی که چیري د تحول دود د کائناتو په مظاهرو کښې بهانده نه وای نو ټولې چارې به پر ځای باندې تپې ولاړې وای، نه به د انسان تکامل په برخه شوی وای او نه به د پوهنې او تمدن کاروان خپل منزل ته رسېدلی وای!

داچې موږ د تحول دود د کائناتو په ټولو چارو کښې منو نو انسان خو هم د طبیعت په اورشو کښې یو ښایسته مخلوق دی، آیا د انسان فردي او اجتماعي ژوند هم له یوه حال څخه و بل حال ته اوړي؟ او که نه د انساني ژوند کاروان پر یوه حال باندې او په یو منزل کښې ولاړ دی.

څرنګه چې موږ د طبیعت په جهان کې حرکت وینو او سم ورسره

د تحول احساس هم کوو. انسان څرنګه چې د طبیعي سننو تابع دی نو ځکه ده په ژوند کښې هم تغیر او بدلون ښکاره اغېزه لري او د جهان پر دې دود او لار سیخ روان دی.

کله چې موږ په انساني ژوند کښې بدلون و ما نه نو په تاریخي لاسوند یو (اسناد) ته مخ واړو او د پخوانیو ټولنو او ارغونو قومونو خوځېدل او

تحول په وینو چې له کوم حال څخه ئې د ژوند و کومې مرحلې ته یون (حرکت) کړی دی د اجتماعیاتو پوهان وائي: چې په لومړي سر کښې انسانانو د غرونو په غارو کښې ژوند کاوه ورو سته تر ډېرو پېړیو او راز راز پېښو څخه دا ژوند په شپون توب سره واوښت د لته انسانانو غرنی ځاروی رام کړل او له دې لارې څخه به ئې خپل ژوند کاوه د مالدارۍ په دې دوره کښې له یوه ځای څخه و بل ځای ته لېږدېدل باب شول او مهاجر- تونه سم ورسره پیداشول، د

انساني ژوند بردې مرحلې هم
ایږونه (زماني) تېر شول څو
د کرهنې دوره راورسېده په دې
راز ژوند کښې انسانانو د کښت
چل زده کړ او له دې لارې څخه
ئې خپل چلاو کاوه د کرهنې
په دوره کښې څرنګه چې
انسانان په یوه ټاټوبي
کښې سره راغونډ شول نو
ملکیت هم منځ ته راغی او
معاملې پراختیا وموندله په دې
راز ژوند سره شخصي او د فکر
بېلوالی هم ډېر شو نو ځکه
قانون منځ ته راغی څو د کمزورو
حق له ظالم څخه واخیستل شي
او امنیت وساتل شي د قانون
په رڼا او د انتظام په سیوري
کښې د اجتماعي ژوند دائره
هم پلې تېره ورسېده، بشري
کاروان پرمخ ولاړی سائنس
ترقي وکړه، ښارونه جوړ شول
او صنعت و زیږېدی د علم او
پوهنې لمن پراخه شوه او د
ژوندانه په چارو کښې د ورا
تحولو نه راغلل انسان و تمدن
ته راشېوه شو او د پوه توی
تهذیب خاوند وګڼل شو.
د تمدن بردې دوره هم تېرې

تېرې شوې او انساني ژوند په
هره برخه کښې د تکامل پلو خوا
اوچت ګامونه واخیستل د ژوند
بڼه الیشه سوه، د فکر او ذوق
لارې بېخي سره واوښتلې، صنعت
او بشري پوهه دومره زیاته
شوه چې د بحرونو تل ته ور ننوتل
او فضائي تر خپل لاس لاندې
راوستله.

د اوسنۍ ټول هیوادونه یو له بل
سره خورا نژدې شول او د نوو
اختراعاتو له برکته لکه:
ټیلفون، تلګراف، راډیو د نیا
د یوه کور شکل غوره کړ، نور
نو له انسان په یوازې توب سره
ژوند کولای نه شي! او نه یوه
ټولنه د نورو هیوادونو له
معاملې څخه ځان ګوښه کولای
شي. دا ځکه چې وخت او زمان
تغیر وکړ او اجتماعي شئون
له یوه حال څخه و بل حال ته
واوښتل. د ژوند په داسې
مرحله او د ټولنو په داسې
بدلون کښې هر قوم ته لازمه
ده چې خپل وروسته پاته کېدل
جبیره کړي او د تمدن وارده
پوتۍ ته ځانونه ورسوي د یوې
ټولنې افراد هغه وخت خپلې

نېکمرغي، نیاوې بشپړ کولای شي
چې علم زده کړي او د علم په
رڼا کښې د وحدت لاسونه سره
ور کړي او د ګډ کار او زیار
په سیوري کښې خپلې دندې په
پاکه مینه او صداقت سره سر
ته ورسوي که چېرې د یوې
وروسته پاتې ټولنې د افرادو
په منځ کښې ځان ځاني موجوده
وي او د شخصي ګټې د پاره پر
اجتماعي منافعو سترګې پټوي
نو هغه جامعه هېڅکله د ترقۍ
او تمدن و کاروان ته
رسېدلای نه شي او نه ئې د
ژوند په چارو کښې سمون
او ښه والی راځي د یوې
ټولنې د پرمختګ او مدني
انتظام او هوسرې پېلامه داده
چې د ولس هر سړی د جامعې
په ګټه کښې خپل خیر
وبولي او د جامعې ضرر د
ځان تاوان وبولي که دا
فکر په یوه ټولنه کښې
پیدا شي نو دي د ترقۍ او
ښاغلتیا هم مبارک شي.

ا.م د کرزی

# د شاپیریانو نکلونه

دانساني فولکلور یوه عامه برخه
د کالج ایسیز څخه د ښاغلي
«غروال» ژباړه

هر ولس یو شمېر پیریانی نکلونه لري، او ددې نکلو لو یوه برخه خورا قدیم تاریخ لري.

له هغه وخت څخه چه خلکو یه ابتدائي ذهنیت د پیریانو پر قدرت او وجود عقیده درلوده، نو دا نکلونه باب شوي دي.

د شاپیریو یو شمېر نکلونه چه د ډېرو ښکلاو سره بیانیږي اکثراً د یونان څخه نورو ځایونه خپاره شوي دي.

دا نکلونه خورا ډېر دي چه مشهوره ئې طلائي ویښتان ډېر شهرت لري.

جرمنیان هم دا ډول نکلونه لري، او یو جرمني لیکوونکي هغه سره ټول کړي د «کریم» نوم ئې پر ایښی چه د «شاپیریانو نکلونه» هم نومیږي.

انګلستان هم دا ډول قیصې لري او هندوستان خو نو یه خاص ډول د داسې نکلو څخه غني دی.

په همدې ډول الف لیلا چه په لویدیځ کې په «اربین نایټ» مشهور دی ددې ډول نکلو او زړو جادوګریو چاد ختیځ د روحیې محصول دی ډک دی.

د شاپیریانو نوله هغه نکلونه چه نن په اروپه کې رواج دی پخواني نه دي او په یو څه اختلاف وروسته هم په نورو ژبو کې جوړ شوي دي.

د مثال په ډول «کندریلا» «بیدې شوي ښکلې» او «شین ږیرې» قصې د یادولو وړ دي.

یو شمېر لیکوال په دې عقیده دي چه ددې نکلو اصل هغه وخت جوړ شوي دي کوم وخت چه آرین ولس په متحد ډول پر یوه ځای اوسېدی. او هغه وخت چه دوي په هجرت پیل وکړ نو یو شمېر ئې یورپ ته لاړل بل ئې باختر ته او بل ئې پرهند ورشیوه شوه، نو دا و چه ددې قصو اختلاف هم منځ ته راغی.

دا نکلونه یو قدیم فولکلور معرفي کوي، خو په وروستنیو وختو کې هم یو شمېر داسې نکلونه لیکل شوي چه هغه د اوو پیړیو د لیکوالو د قلم محصول دي.

په دې لیکوالو کې چه دا نکلونه ئې په ادبیاتو کې بالللی مشهور ئې یو ډنمارک لیکوال «هنس اندرسن» دی او په انګلستان کې «چارلس کینګزلی»، «جیمز باري» او «والټر ډېلامر» ډېر معروف دي.

ددوي نکلونه لکه «د اوبو کوچنیان» او «پیټرپان» نه یوازې کوچنیان په ډېره خوشالي وائي بلکه لوی خلک هم په پراخه پیمانه ددې نکلو له ویلو سره علاقه لري.

که څه هم نن څوك و شاپیریانو ارواو وجود ته کومه عقیده نلري ولې کلیوالي خلک او اغلباً ووړو کې دا نکلونه ډېر خوښ لري.

څرنګه چه ددې قصو سره علاقه موجوده ده. نو هم‌دا اوس بو شمېر لیکونکی دا نکلونه لیکی او نور ئې هم په پوره دلچسپی لولی .

کوچنیان ځکه د شاپیریانو د نکلو سره دلچسپی لری چه مینه‌دی ئې همېشه‌دادول نکلونه دوی ته کوی او قیصې ئې خورا ښه ورته بریښوی .

څرنګه‌چه موږ اوس دمشېټو تجربو او مادی واقعیت په زمانه کی ژوند کوو اوزموږ یکنواخته ژوندهم دضرورت پراساس ډیونکل باسرنوشت دلو ستلو سره علاقه‌لری اودا نکلونه ځکه چه پر واقعیت بنا نه‌دی اوخیالی دنیاجوړوی نو په هیڅ ډول زموږ ذهنی احتیاج نسی رفع کولای، نو ځکه بساید دنکل په لحاظ واقعی داستانونه اونکلونه د هغه‌پرځای کښېښول سی او همداوجه ده چه‌مترقی خلک عموماً ناولونه چه قصه ئې د یو واقعی حادثې څخه حکایت کوی لولی اودا نوله هم‌ددې له پاره چه یو ښه کیف پربنا سی اودور ځنې کسالت څخه‌مو لیری وساتی .

څرنګه چه کوچنیان د نوو اوعجائبو شیانو سره علاقه‌لری نودوی ته دشاپیریانو نکلونه ډېردلچسپه وی اوهغه‌چه‌دوی ته دیو نااشنا عالم په‌باره کی څه وائی دا ددوی د ډیری خوښۍ باعث ګرزی .

د «جمیلې» عمرزی ټولونه:

دښځو غېږ دانسانیت خزانه‌او سړی جوړولو لومړی کارخانه ده . «ولټر»

* * *

د هغه چاسره چه ستا دآزار موجب سوی‌وی ښه کول شرافت دی .

* * *

محبت دمحبت څخه‌زیږی .
«نیمسایر»

* * *

هرڅوک ژردې عیبونه لیدلای سی نوخپل عیب دهرچا ترعیب ژردې دی بایداصلاح سی.

* * *

داجهان لکه هنداره هرڅوک

# پوهان وایی:

خپله بنده‌یکښې لیدلای سی.
«چاکرای»

* * *

څوك چه نن دبل د ملامتیه خاطر،له‌ځانه سره‌ساتی دښه زړه خاوند نه‌دی .

* * *

درې ډوله نشې زورەوری دی:- ددولت نشه . دښایست نشه . دعلم نشه .

* * *

درې شیان دادرې وخته‌پېژندل کیږی : دلاور دجنګ په‌وخت کی. هوښیار دقهر اوغضب په وخت کی اودوست دارتیا په وخت کی .

* * *

دولت دهغه‌چا دی چه خوری ئې دهغه‌چا نه‌دی چه ګټی ئې .

* * *

جهالت ترټولو لوی حقارت او غربت دی .

* * *

لوئی مانوه له‌سیوری څخه‌اوغټ خلک د ډېرو دښمنانو څخه پېژندلای سو .

ښاغلی محمد عالم «بخړ کی»

# هیګل

# او

# مارکس

په نولسم قرن د انقلابي خلکو وروسته پر یورپ باندې د هیګل فلسفه غلبه درلوده . د هیګل فلسفه د کانټ ښخه او کانټ د روسو ښخه متاثره شوې دی . د هیګل فلسفي فرد د ریاست تابع کړی ؤ ، خو ریاست ورته یو باطني مفهوم درلوده .

د مارکس سوشلزم د هیګل د فلسفي روح واخیست او جسم ئې ورمستړد کی .

هیګل وائي : د ترقي دارومدار د تصور په تدریجي پوهېدو کې دی ، ځکه اول مادي شیان د دې تصور عکس دی .

تدریجي ترقي په هره زمانه کې د تصوراتو د تصادم ښخه پیدا کیږي ، په هره زمانه کې غالب تصور د خپل ضد سره متصادم شوی دی . دا تصادم تر هغه وخته دوام لري څو قدیم او جدید ښخه یو نوی تصور پیدا کیږي هیګل دې تصور ته ترکیب وائي او دغه ترکیب هم بخپل وار د بل تصور سره متصادم کیږي چه

په دغه توګه ارتقائي مدارج طی کیږي .

کارل مارکس او هیګل دا ارتقائي خیال په مادیت تبدیل کړی .

د هیګل په خیال په هره زمانه کې یو غالب تصور موجود وي دا غالب تصور د خپل مخالف تصور سره متصادم کیږي او د دغه تصادم ښخه یو نوی تصور چه د هیګل په اصطلاح ترکیب ورته ویل کیږي ، په وجود ځني راځي ، چه تر یوه خاص میعاد پورې د غالب تصور شکل

اختیاروي ، وروسته دغه غالب تصور بیا د خپل مخالف تصور سره متصادم کیږي او د تصادم دا سلسله ارتقائي ده .

کارل مارکس تنها تصور کافي نه بولي بلکه اصلي وجه د اجتماع مادي حالت بولي یعني معاشیات پر اجتماع باندې تصور پیدا کوي . دې نظریې ته د تاریخ معاشي نظریه ویل کیږي ، د دې نظریې د رویه پیدائشي ذرائع په ارتقائي عمل کې طبقاتي عمل پیدا کوي . د دغو ذرائعو په بدلون سره په ټولنه کې مختلفه تبدیلي واقع کیږي .

په یوه زمانه کې د زمیندارانو اقتدار او سلطه موجوده وه ، په هغه زمانه کې د اجتماع تشکیل

د جاګیردارانو د ضروریاتو
مطابق سوی ؤ، بسله هغه صنعتی
او تجارتی دوره راغلهٔ، دې
دورې د زمیندارانو زمانه یوه
دلپونو افسانه وبلله، د نوی
صنعتی سرمایه دارانو او زړو
زمیندارانو ترمنځ د اقتدار
ولاس ته د راوستلو دپاره تصادم
پیدا سو، پدې تصادم کی نوی
وزاره طرز معیشت ته شکست
ورکی. صنعتی سرمایه دارانو
دخپل اقتدار دپاره مزدوران
سره جمع کړه او وې غوښتل
چه دپاره دخپل پیداوار دوی
استعمال کی یعنی کښه ځنی
واخلی، د مزدورانو ددې
اجتماع څخه یو نوی تحریك
پیدا سو چه په نامه دمزدورانو
دتحریك یادیږی، دې تحریك
دسرمایه دارانو ومنځ ته دمزدو-
رانو مطالبات وروړاندی کړه
دې مطالبانو یو کشمکش په
منځ کی د سرمائې او محنت
پیدا کی او یو طبقاتی جنګ
د دوی په منځ کی وموښتی.
دمارکس په نظریه محنت ته پر
سرمایهٔ غلبه حاصله ده؛ کوم
وخت چه د مزدورانو دا دله
(پرولتاریه) کامیابه سی نو
دچوراوچپاول دپاره به هیڅ
طبقه نه وی موجوده. او یو بې
طبقی معاشره به منځ ته راسی
او د قوم ټول ذرائع به د ټولو
دمفاد دپاره استعمالیږی.

د کارل مارکس په نظریه
تاریخ ټول له د طبقاتی کشمکش
پوار تقائی عمل دی.

مارکس دخپلې دې نظریې په
تائید کی بایدیو تاریخ لیکلی
وای. خوده پردې موضوع
باندی قلم اندی را اخیستی او نه
تراوسه پوری کوم بل چاپر دې
موضوع باندی څه لیکلی دی.

مارکس سیاست یو آزاد علم
نه بولی، بلکه دسیاسی ماحول
معاشی عکس ګڼی دمارکس
موریدانو په ۱۹ قرن کی د
جمهوریت اساسات په یوه قلم
ور رد کړه. دوی عقیده اری
چه جمهوریت ترهغه وخته یو
بې معنی عمل دی تر کومه
وخته چه په جامعه کی معاشی
مساوات نه وی پیدا سوی.

## آسوالډ شپنګلر

د شلم قرن دې لوی عالم یخپل
مشهور کتاب د «خوب زوال»
سره یوروپ او امریکه
و شوروله.

ددې کتاب فروش نه تنها په
جرمنی کی یو لك ته ورسېدی،
فرانسویانو ددې کتاب
برخلاف لیکنی وکړی، حتی
یوه فرانسوی اخبار تردې
اندازې پوری ولیکل چه د
کتابونو ورکو یوه لو دوره
راګرزیدلی ده، دا کتاب ئې
ددوری سره تشبیه کی.

دا عالم که موږ یو الحی مؤرخ
او یا فلسفی و بولو دا به ده
توهین وی، دی پرد پرو علومو
حاوی ؤ.

دی الحاد، معاشیات، اشتراکیت
د یوه ماشین برزې ګڼی، او
دغه رنګه دې دعوا لری
چه موږ کولای سو چه د ګذشته
د مطالعې څخه آینده تخمین
کړو، په دې ترتیب سره دی
لومړی سړی ؤ چه تاریخ ئې
ولیکی دا تاریخ داسی ښکاره
کیږی لکه یخوا چه لا لیکل
سوی ؤ.

دی منځنی پیړی او نوی زمانه
نه منی، دی هغه فلسفی مؤرخ
دی چه د بشر مطالعه په زمان
کی کوی، عیناً دارنګه لکه

«پاته په [۸] مخ کی»

پیغله عزیزه «رشاد»



# هلن کلر

د یوولس کتابو ، او د سوو مقالو لیکوونکې ده . نه یې لیده او نه اورېده په ژوندانه کښې د دې د بریالیتوب راز دادی: چه دا د داسې لویو مصیبتونو سره هم هیڅکله ناامیده شوې نده .

هلن کلر ، د دې عصر د مشهورو ښځو څخه یوه نامتو ښځه ده . د دې په ډول بلې ښځې دا رنګه ژوندانه کړېدی ، او دغې حساسې ښځې د امریکا و تولنو ایالاتو او د اروپا او هیوادونو سفر کړی ، په خپلو ګټورو مقالو او ښو خبرو اترو ئې په زرهاو انسانونه فیض رسولی او لار ښوونه ئې کړېده .

هلن کلر په امریکا ئې یوه کورنۍ کښې دنیا ته راغلې ، یو کال او څو میاشتې ئې خپل ژوندون د یو طبیعي کوچني په ډول کړی او بیا ناڅاپه ناروغه شوېده . د ناروغۍ څخه ئې صحت وروسته ئې لیدنه ، اورېدنه او د خبرو کولو « ناطقې » قوه د لاسه څخه ور کړه او د دې پاك وجود رابطه د باندې نړۍ سره بریکړه شوه .

د دې مور او پلار د یوه عالم تأثر سره دا د ړندو و ښوونځي ته ورولېږله ، او د دې روزنه او پالنه ئې د یوې انجلۍ چه « لن فاسفلاسولیوان » نومېده په لاس ور کړه ؛ تر یوه میاشت کوښښ وروسته د دغه زحمت ګالوونکې انجلۍ په بېساري صبر و حوصله و کړای شوای چه د کوچنۍ هلن کلر په مطلب و پوهیږي او هم خپل مقصد ور ته ور وښئي په دغه ډول ئې د دې انجلۍ د روزنې او پالنې دنده پر خپلو اوږو باندې واخیستله .

هلن کلر تر او کالو پورې نشوای کولای چه یوه کلمه خبره و کي ، زده کړه ئې مخ پر وړاندې تله یو عجیب لیاقت او استعداد ئې په زده کړه کې د خپل ځانه څخه ښکاره او میدان ته راوېوست ، لیك او لوست ئې د برجسته حروفو په توسط و لاس ته راوړ ، کوم وخت چه دا د ۲۱ کالو و عمر ته ورسېده ځکه چه د پر وخت ئې په مطالعه سره نېږاوه د زښت معلومات درلوونکې وه د ښوونکي (معلمې) په کومك



**د پکتیا ولایت، په‌خوست کی یوه عصری ګلخانه**

پخوا چی‌د مملکت پدې سیمه‌کی عصری تعمیراتو هیڅ وجود نه‌درلود اوس‌ئې له هره‌حیثه
پرمختیا لیدله کیږی چی دائې د تعمیراتی پرمخ تګ یوه نمونه ده .

دراد کلیف په کالج کې شامله شوه تر یو څه عمر وروسته په بریالیتوب او موفقانه صورت د کالج څخه فارغه شوه د زده کړې تر حاصلولو وروسته ئې کولای شوای چه په انګلیسي ژبه کتبي د یوه پردي نفر په ډول د تلفظ اصطلاحیته خبري وکړي.

هلن کلر خپلې مقالې د هغه ماشین پتوسط چه برجسته حروف پر کاغذ باندې ایجادوي لیکي او کله چه وغواړي یوه کلمه تصحیح کړي د سنجق پذریعه د کاغذ هغه غلط شوی ځای اصلاح کوي.

هلن کلر د لامسې دقوې حس دراوونکې ده که خپلې ګوتې د خپلوانو او دوستانو پر شونډانو باندې کښیږدي پوهیږي چه د غه سړی څه وائي د رادیو او ګرافون او نور موزیك والو ږغ او دهغو اهتزازات هم د ګوتو پذریعه اوري که پنځه کاله وروسته هم یو څوك ملاقات ورسره وکړي او خپلې ګوتې دهغه پر شونډو باندې کښیږدي په پوهیږي چه دا څوك دی او آخرنی ملاقات ئې کوم وخت دې سره کړېدی.

هلن کلر چه په خپل ژوند کې د پر تکلیفونه اوړ پروونه لیدلي او روزګار هم ددې سره په بې رحمانه ډول رفتار کړېدی لاهم نا امیده شوې نده د خپل مقصود او هدف په غرض چه هغه د خلګو رغبت او نوع پروري او پر ګټو کارونه وو هیڅ یوه مصیبت چه به دا په اخته وه

«نور په ۲۴ مخ کې»

## هیګل او ....

«د شپږم مخ پاتې»

یو مابعدالطبعاتي فیلسوف چه حقیقت په مکان کې لټوي.

شپنګلر تول له تاریخ پر مدني ادوارو ویشلي دي. د ده هر تمدن نه په طفولیت شباب، مردانګي او زړتوب باندې قائل دی. او هر تمدن یو شانته خارجي حالات او نتائج اري.

د هر تمدن آغاز په مذهب او پای ئې پر سانتفس کیږي، په ابتداء کې ښارونه کوچني او بې اساسي او بیا بیا د زراعت څخه شروع کیږي او پر صنعت باندې خاتمه پیدا کوي. د ساده مګر ښکلي فن څخه شروع کیږي او انجام هم هر بې معنی او کمزوره آرت وي.

ددې تمدن دورې مساوي عمر اري، دی د دیرو قرنو تاریخ فقط په یوه جمله کې ختموي او وائي :-

یونانیان د حدود قائل وه او د مغربي یورپ خلګ د لا محدودیت، ځکه نو د یونانی تاجرانو او ګوتو له لیرې ځایو ته تو له رسېدل، لېکن د مغربي یورپ او ګوتو نه خپل بادوانو نه دلیرې لیرې ځایو دپاره خلاص کړي وه.

شپنګلر چه د تمدن کوم ادوار لیکه : پسرلی، دوبی، منی او ژمی تاکلي دي، هغه پر هر قوم باندې ښه نه تطبیقیږي، د پر ځله داسې ایدل سویدي چه یو قوم تر پسرلي وروسته د منې ته هغه چه په دوبي ور ګډ سي فیصله سویدي.

او همدغه رنګه د یوه ملك او قوم یو خاص تمدن نه وي؛ بلکه په یوه خاصه دوره کې د یوې خاصې طبقې یو خاص تمدن وي، په یوه ملك کې د مختلفو طبقو خلګو تمدن مختلف وي.

# کلاسیک څه شی دی ؟

د ښاغلي م، ا، ن ترجمه
او تصرف

موږ اکثره د کلاسیک لفظ اورو چه د خلکو په اظهاراتو کې استعمالیږي لکه داسې: د میلټن (پیراډایز لاسټ) بو اوې کلاسیک اثر دی .
یا « د انګلیسي ادبیاتو د کلاسیک په جمله کې دغه اثر ډېر اوستل کیږي ».
یا « داسې ناول خو ښه دی مګر هیڅ کله کلاسیک کېدلای نسي ».
چه کلاسیک دغه ډول استعمالیږي نو له دې لفظ څخه په حقیقي ډول سره موږ څه که معنی اخلو ؟
د کلاسیک یـا « کلاسیکو » جمع نوم چه د ادبیاتو دپاره تر استعمال لاندې راغلی دی په اصلي کې له هغه وېشه څخه را پیدا سوی دی کوم چه د پخوانی روم د پېړیو د جمعیت خلک د جایداد له مخې پـر پنځو کلاسو (طبقاتو) باندې وویشل سوه یدې پسې نو د کلاسیکس « رومي »، « کلاسیک » نوم د هغو پنځو کلاسو په جمله کې دی چه د هغه لومړي کلاس (طبقې) دپاره په استعمال کې رواج سو، له دې استعماله سره نو کلاسیک د « پرسټ کلاس » معنی پسې ور کړه .
تر میلاد وروسته په دوهمه پېړۍ کې د کلاسیک لفظ یا « کلاسیکل » ددې دپاره استعمالېدی چه د قدیم یونان او روم ستر و لیکوالو ته توصیفي امتیاز پېور کړي او په هم هغه وخت کې د دوی لیکنې د « کلاسیکز » په حیث سره پېژندل کېدلې .
په اروپائي پوهنځیو او پوهنتونو کې تر دا او سو عصري وختو پورې لا د مطالعې اساسي موضوع « کلاسیک » وه چه هغه عبارت له هغو کتابو او لیکنو څخه وه چه د ادبیاتو د کلاسیکي دورو د یوناني او لاتیني مؤلفینو له خوا تالیف سوې وه دغه کتابونه نو د دنیا د ادبیاتو په جمله کې هغه « پرسټ کلاس » اثار ګڼل کېدله .
خو اوس د کلاسیک د لفظ معنی وسعت پیدا کړی دی او د ټولو ستر و ادبیاتو و منلو شهکارونه کلاسیک ویل کېږي نو ځکه پـه دې اساس د روسي کلاسیک انګلیسي کلاسیک ، فرانسوي کلاسیک ، ایټالوي کلاسیک ، جرمني کلاسیک او هسپانوي کلاسیک اثارو په باره کې ږغېدلای سوای په دغو پانورو ژبو کې پو کلاسیک د هغه نثر یا نظم و کتاب ته ویل کیږي چه د وخت له ذوقو سره برابر وي دغه نو پدې پورې اړه لري چه موضوع یې ښه عالي وي او مکمل ادبي شکل یې ور کول

« نور ئې په ۲۵ مخ کې »

لیکوونکی: جبران خلیل جبران
مترجم: «نجیب»

له عربي څخه
«۲»

# مضجع العروس
## یا
## د ناوې د خوب ځای

چه غیر له پیریانو او پریانو څخه انسانان لار نه ورته لري او یا هم پخپل پاك لاس سره مړه که چه په وفادارو مینو کښې سر لوړی او د عشق په دفتر کښې مې نوم ثبت شي .

گرانه سلیمه! راځه چه د شپې له دې تاریکۍ څخه استفاده وکړو او ژر له دې ځایه څخه ووزو گواندې د دریاب پر غاړه باندې کومه بېړۍ پیدا کړو او د یوه نااشنا ملك ته سفر وکړو ؛ معطلي به کار نه ده تر لمر څرك پورې ځان تر یوه ځایه پورې رسولای شو یقین وکړه چه د عیش او نوش زړه بایلوونکي داسې بېخوده دي چه تر دېره پورې به پر موږ خبر نشي دا د غلادي قیمتي امیلونه د گوتو ښکلي انگشترې او د لاسو الماسي وښی ماته د خوښۍ ژړا نه نشي رابخښلای او نه هم پاك د عشق په لمبو سوی زړه غوړولای شي .

زما مینه سلیمه! ولې خبرې نه کوې او نه زما پر وزلی نغلی وخوانه گورې پر ځای د محبت په غېږ کښې تینگه له نیسې او د ځلبلاند زړه فریاد مې له ژړدو څخه نه اورې لکه چه زما د مېړه او مور و پلار پرېښول دې د دې ناوې توب په کالو کښې وزړه نه نه لوېږي ژر جواب راکه ؛ او دا قیمتي وخت چه د الماسو تر تاجونو او د پاچهانو تر تخت زیات ارزښت لري له لاسه مه باسه .

د ناوې خبرې تر ژوند شیرینې او د مرگ تر غلبلو ترخې او وېرجنې دي د بڼ د مرغانو تر الوتو سپکې او د دریاب تر خروښانو موجو سهمناك دي .

ځوان له یوې خوا څخه د دې ود دې زړه رپیونکو وېناؤ ته غوږ نیولی ؤ او له بلې خوا څخه په زړه کښې له عشق او شرافت سره په کشمکش اخته ؤ عشق چه سختۍ د پرې پستې کوي او د حمام له تور گلخن څخه زړه وړونکی بڼ جوړوي په دې مبارزه کښې د ځلمیتوب او نفساني غوښتنو ومخې ته تینگ ولاړ ؤ د زړه بایلنې او محبت څراغ چه پاك خدای د انسان په زړه کښې بل کړی دی، آیا نشي کولای چه پر شرافت باندې دې چه بېځایه رسمو او د قیانوسي عنعنانو د انسان په دماغ کښې ځای کړی دی بری پیدا کړي؟

اما متأسفانه چه پس له څو دقیقو سکوت او تأمل څخه شرافت پر عشق باندې غالب شو او ځوان د فکرو اندېښنې له زنگانه

ښځه سر اوچت کړ مخ ئې له هغې خوا رځو اکي هجران زدې پېغلې ښځه پهډېره بې-پروائي سره واړاوه او د نا ئې به دول ئې ورته وویله: اې ښځې کار تر کار تېرشوی دی بېرته وخپل ناتوبی ته ولاړه شه او له مېړه سره دې ذخوښي ورځې اوشپې تېرې کړه هغه دخوب چرتونه او خیالونه چه ستا په ذهن کښې نقش شوي وه و بښې اوهوښیارېه تواله پرمخ مخوره کړه زما د دښمنانو دغه خبرې چه وائي به دا خو هغه بې شرمه او بې حیاده چه دمخه ترودوزن ئې له معشوق او به واده کښې ئې له مېړه سره خیانت وکړ نه در باندې بېرزو کېږي، دا به ښه وي چه زه خپله لار او ته خپله لار ونیسې .

ددې خبرو له اورېدو ښځه د ناوې شکلې بدن رېږدوا خیست او مخ ئې د نارنج به شان ټک ژړ شو پهډېر حزین آواز سره ئې جواب ورکړل ما ښځه دا کور یا ته دې ته غواړمه چه پهدې زندان کښې خپل آزاد روح بېرته محصور کړم د خدای روی وګوره ما له خپله ځانه ښځه مه لیرې کوه او د بې ناموسې مردارو ټپله مې پرپاک روح او پاک بدن باندې مه پرېږده د عشق لاس چه زما ؤ ستا روح ئې سره نژدې کړې دی د کشیش ترحقه مردار لاس چه کالبد مې ئې دمېړه و ارادې ته وسپاره دېر قوي دی په ډېر اخلاص سره خپل لاس ونه ستا په غاړه کې دراچومه او خپل روح بېرته ستا و روح ته نژدې کومه چه دمرګ منګلې به ئې بیا د جلا کېدو توان و نه لري .

ځلمي ئې به خورا بې پروائي سره لاس له خپلې غاړې ښځه وکیښ او پهډېره نندې ؤقهر سره ئې ورته وویله: راښځه لوري سره له شکله ښځه دې بېزاره یمه ستا محبت ما دوخته له زړه ښځه ابستلی او دبل چا مینې ته مې ځای پکښې ورکړی دی خلګو چه ښځه درته ویلې دي حقیقت لري اوس وپوهېدې زیاتې مې مه ازاروه ورسه له خپله مېړه سره دې دمحبت مزې تېرېنګ که دې ستو خو خبرو د پېوزاني پېغلې پرزړه باندې سور اور بل کړ او په خورا حسرت سره ئې خپلې ملالې سترګې وځلوانته ور واړولې بیاني دزړه د درد او د محبت وېرجن داستان ورته ښکاره کړ .

ستا د پتې مینې راز ما ته له خمار وسترګو ښځه معلومېږي تو ځکه دې د او ښاوړی د کومې ناامیندی وېناوې نه دی چه په هغه سره دې زما زړه مأیوسه شي په سینه کښې نژدې کېدو سره دې دعشق جاذبې زما په ټول بدن کښې سرایت وکړ او آوازه کولای شم چه له تا ښځه دې بېله شم یا به مې وینې تو یوي یا به د خپل محبت په کوګل کښې ځای راکړې وي، مقصد دادی چه ستا رضا عینې زما رضا ده توري اوزدې او له دې خبري به نه سره کوو .

پر زړه سختی ځوان باندې دې وینا ؤ کومه اغیزه و نه کړه په اوږد آواز ئې وویله: اې ښځې زما ښځه لاس واخله د نارو کولو او عالم خبرولو ته مې مه اړباسه که دې ډېر پټمنګ کړم ټول مېلمانه به سره له خپلې مینې عجیبې در خبر کړمه چه ټوم دې په تواله ښار کښې سره انځور کړي او بله ورځ وچانه له شرمه

پورته و نه کښلای شی.

دې ویناو چه پر هغې باندې کړمه اغیزه و نه کړه او دې زباني تهدیدو د عشق اور مړ نه کړ او ځوان غیرله دې ځخه چه دا په زور له ځانه ځخه لیری کړی بله چاره و نه لیدله خبره چه و زورته راغله د ناوي مخ له قهره ځخه سور او شین شو او خپل وضعیت ئې له ملایمې ځخه وخشونت او بې حیائي ته واړاوه د خروښانه سېل او قهره من زمري په څېر سره ئې په زوره وویله :-

کومه پېغله چه پسلهمه اځخه ستا له محبت او نوازش ځخه برخوره اره کېږي، کوم زړه دی چه په غلا سره ستا د عشق له میو ځخه مستېږي زما د خپل مین عشق او محبت پر بل چا نه پیرزو کېږي او نه دا روحي اضطراب اضافه تر دې زه زغملای شم.

دا ئې وویله، او سمدستي ئې یو تېره خنجر له استوني ځخه را وکیښ او د سلیم په سینه کښې ئې ښخ کړ چه د مغه له اثره ځخه پر مځکه چپه شو او د بسمل په ډول سره په وینو کښې تپېدی د ناوي د مخ موښلو او اوښکو د څڅکو د څڅېدلو په احساس سره زخمي سلیم سترګې له بېځه خلاصي کړي او د شونډانو په ښورولو سره ئې وویله :-

اې زما محبوبې لیلا! را نژدې شه ما یوازې مه پرېږده اوس را معلومه شوه چه ژوند و مرګ ته هیڅ شی نه دی او د عشق په مقابل کښې کوم ارزش نه لري.

ګرانې لیلا! د خپل واده د میلمنو وخندا ته پېره ځیره شه او د شرابو د جامو و آوازته ئې غوږ ونیسه.

مینې لیلا! زه چه دې د خپل مین تا په خنجر سره د زړه پر سر وو هلم او د دوی د خندا له سترګو یاد مېو له تلخي ځخه دې نجات راکړ لطفاً زما صمیمانه تشکر په دې مورد کښې قبول او خپل مبارك لاس د چولو په غرض سره را اوږد کړه.

اې د عشق او محبت فرښتې! زما په شونډانو پوری چه د حقیقت د اسرارو یو تو ټکی وه خپلې سترګې ومروږه کله چه روح می د بدن له محبس ځخه آزاد شو او د لوړی فضا و او ډ عالم ته والوتی تو دا زما په وینو ککړ شوی خنجر چه د دنیا تر قیمتي الماسو زیات قدر لري زما و اود خ ته کښېږده او وخلکو ته روایه: چه سلیم د ژوند له بدبینۍ او ناامیدۍ ځخه خپل ځان وواژه.

ګرانې محبوبې! زما پیرزو ینوه او ستا بې ځایه غولیدلو ماته پرنکړ سوو ځبره زړور توب را کړ مکر دا و زړه ته واچوه چه د ژوند تر دې اخیرني وخته پوری ما غیر له تا ځخه له بل چا سره د محبت ترون نه دی کړی ستا دا فدا کاری چه دې د واده په ورځ کښې دی وکړه د دېر تمجید او تمائخیني وړ ده.

وفاداری ناوې! د دې ویناو په آخر کښې سر د فکر له ژړګانه ځخه پورته کړ مخ ئې د سالون وخواته وګرزاوه په لوړ آواز ئې وویله :-

اې خلکو راسیء زوم او ناوې دلته دي، دا هغه ځای دی چه د مین او مینې پاك روح دلوړ عالم په حضور کښې راز او نیاز پکښې کوی وینئ شی چه د عشق او ژوند د مرګ پېټ

اسرار در وښیم .

دې آواز بېخوده مېلمانه د غفلت له درانه خوبه وېښ کړه او په بوه عالم وارخطا ئې سره ئې د سلیم دمره جسد پر چار پېر صفو نه وتړله د دې وېرجنې صحنې په لیدلو سره له ډېر حیرته څخه د هر یوه سترګې له کولکانو څخه راووتلې ژبې ګونګې او رنګونه ئې تک ژیړ شوه .

د ناوې تندې د دې شهوت پرستو خودخواهو انسانانو له لیدو څخه تر یو شو په خورا دردناکه آواز سره ئې وویل :-

اې بې ننګانو را ژړېږئ له مرګه څخه مه تښتئ مرګ له شرافت او بېشمره ستاسې تر ژوندېکت په زرهاواره زیات دی، د دې سعادت له خنجره څخه چه په لاس کښې مې نیمګی نیولی دی مهدار پېژنئ دا هغه مقدسه آله ده چه ستاسې له ناپاکو بدنو او ناپاکو سینو سره آشنائي نه لري هغه شهوت پرسته خسمان چه په ظاهره انسان او په باطن کښې لېوه دي نه مېړه ګڼم ، زما عزیز مېړه او ګران معشوق دغه نازنین بشر دی چه بخپل لاس مې د و بخو سره چامه په واغوستله او د بلع لم داز دواج تړون مې ور سره وکړ، څنګه چه تاسې په غلطو رسمو او ناوړو رواجو سره د دې دنیا پراخه صحنه پرمونږ تنګه کړه نو ځکه ما او مېړه د اور بخو وها پلو ته د سفر عزم وکړ .

اې پېزده تورو ! د خدای نور زمونږ درو په پاکو څهرو کښې له نژدې څخه وګورئ او رباني نغمې مو د زړو له کومو څخه واورئ هغه شیطانه دو اندازه نجیبه چه زما او د مین په مینانو کښې ئې درز اچاوه او راز راز خبرې به ئې وې او دواړو ته ګولې چېرې ده ، درنه وواياست چه راسی او زما دواده دامجلل جشن خپلو بسد بینو سترګو ووینئ .

زه او مېړه مه چه تاسې ددې داستان په بوتسو اسرار نه پوهېږئ نو خپلو ماشومانو ته خونئ په پوره وضاحت سره وکړئ چه زمونږ ښتنې میتنوب وستاسې او ستاسې پر ظلمو استبداد باندې چه له پېوزلو سپاه سرو سره ئې کوئ نفرت وواتئ .

په دې وخت کښې ناوې مخ د مجازي مېړه وخوانه راواړاوه په خورا عتاب ئې ورته وویله:

اې ظالم او خدای ناترسه لېوه تا زه د پېسو او تمول په د سیسو سره ماینه ګڼلم نه څو سره بدبختئ ئې چه په تورو تیارېکه کښې نورغوا ددې او له تورو کانو څخه درونو او پر چینه جاري کوي ، په خطا وتلم نه هغه روند ئې چه د نورو په لارښوونه سره حرکت کوي نه هغه دروا غجن ئې چه د غاړ ګیو په زور ګولو سره غاړې پرې کوي .

اې د آزادو اروحسو بندي ګونکي! وپوهېږه هغه روح چه د ژوند له قیودا نو څخه آزاد شو بیا ګرې خطاوي او ګناهو ته نه وړی .

په دې وخت کښې ئې خنجر پورته کړ او په پوره قوت سره ئې بخپله ښکلې سینه چخ کړ د زنبق د ګل په دول چه په لاره ور پېل شي د سلیم له څنګه سره واوېدله .

د ښځو نرۍ زړونه د دې حادثې ودرد له او دغم او ماتم آوازونه له هرې خوا څخه پورته شوه

## نوميالي پوهان

د ښاغلي «افق»
ترجمه او تتبع

# توماس اډيسن

دمځکې پرمخ ډېر عالمان او پوهان پيدا سوي دي چه هر يوه ئې د خپل توان په هرقسم د انسانانو د ياره څه نه څه خدمت کړيدی او ډېرو ئې خورا ښه او مهم اختراعات کړيدي چه هر يو هر اختراع ئې د بشري مدنيت د اوږدو دپاره ښه مرستيال بولو .

نو پدې سلسله کې توماس اډيسن هم دامريکا نه بلکه د دنيا د نامتو مخترعينو څخه بلل کېږي .



د اډيسن بخپلو ښځی ډېرو اختراعاتو کی يو مهمه اختراع د برق اختراع ده چه تر خورا ډېری زمانې پوری به انسانان ددې اختراع څخه ګټه اخلی .

اډيسن د ۱۸۴۷م کال د فروری د مياشتې په ۱۱ نېټه د اوهيو په ښار کی پيداسوی دی . چه د زېږېدنې ځای ئې تراوسه پوری لاموجود دی .

اډيسن چه د «۷» کالو وو نو ئې مور او کورنی نوله د مشيګان نه ولايت ته راغوښتل سوه . دی لا ډېر و کی وو چه پرده باندی د نبوغ علامې ښکاره وې خو معلم ئې هيڅ په ځراکت نه پوهېدی او غبی ئې باله نو به ئې همېشه ترټله او به عذاباوه به ئې ، اما پوه ګی ددې مور ددې د اختراعاتو استعداد معلوم کړی وو نو ئې له مکتب څخه راوېوست او په شخصی مطالعو ئې واخته کی اډيسن په خپله کوچنيوالی کی د نورو کوچنيانو څخه داسی ځان جلا کړی وو چه هغوی هر څه منل امادی په هغه وخت کی مشاهده وي او تجربوي عمليا تو ته د حقيقت په سترګه کتل . دی چه د «۹» کالو سو نو ئې د «پارکر» واليکنو ته مخ وراړولی دی او دغه وليکنه دروازه ده چه ددې د علمي ژوند د پاره خلاصيږي .

پارکر يو کتاب چه «طبيعی او تجربوي فلسفه» نوميږی په «نور په ۲۶ مخ کې»

ځوانمرګی ناوی د ژوند په آخیر نیو سوالګیو کښی وویله:

اې زما بدوبونکی! زموږ مړه جسدونه مه سره لیری کوۍ. پر دغه حال ئې پرېږدۍ چه دا وږی مځکه بخپل زړه کښی ځای ور کړی او د ښکلو ګلانو دنخمو په څېر سره ئې له وادورو او یخه څخه وساتی.

ای زما ناز نینه مینه! دحاسدانو تراې وګوره چه زموږ دابدی خوب پرځای بـاندی څنګه غونډه شو پدغه تـاچه له ډېری مودې راپدېخوا زمـا انتظار یوست دادی دابد له پاره ستاله پاره ستا له څنګه سره خبرامانه وغزېدام.

دې وېرجنی صحنې ته له حاضرین د حیرت په ګرداب کښی غوټه کړې وه او هیچا دنښ حرکت او نشو خبرو قدرت نه در اودی پدې وخت کښی هغه کشیش چه د نکاح تراومراسم ئې پر ځای کړی وه رادمخه شو او دلاس په اشاره سره ئې ودوی ته خطاب وکړ هغه لاس چه ودې دوو جنایت کارو نمشونه وروړه سی ترا بده پوری به ننګین او مبغوض وی هغه ستر ګی چه ددې دوو تبهکارو

## فوږه مال شاعر

یوه شاعر د عربو د یوه بدای په وړاندی د مدحی قصیده واوستله چه نوموړی ډېره ښه او په بـدل کښی ئې وخپل لیکونکی تـه د دلسوزرو درهمو د صلې ور کولو امر وکـی.

مداح شاعر چه د صلې نوم وارېدی له ډېری خوشحالی او خندا څخه ئې خوله دوری هیسته ولاړه او دستر ګو په اشاره ئې د تشکر اظهار بخنی وکی.

بډای چه دده داهومره خوښی واېدله نو دصلې مبلغ له لسوزرو څخه وشلوزرو ته جګ کی د شاعر چه دداهومره مبلغ دبخښلو [نور په بنغاو بشتم مخ کی]

پرحال چه شیطان ئې دمخه لا روح و جهنم ته استولی دی او ښلنی شی، په داسی ستر ګو کښی باید ایرې او خـاوری وباشل شی ددې دوو بې شرفو مردار لاشونه دسپو دخوراک ور دی او یا دا چه دتول د عبرت له پاره په عمومی محضر کښی وځړول شی. اې خلکو! پېر نه وخپلو کورونه ولاړ شی او ددې

ګنهګارانو له مردارو اروحو څخه ځانونه ګوښه کړی چه شامت ئې وتاسی ته و نه رسیږی هرڅوک چه دا ته پاته شو هغه به دخدای د درګاه نه رټلی او د حضرت مسیح د کلیسا له نکه څخه محرومه وی.

هغه سوسن نومی پیغله چه د ناوی پیغام ئې وسلیم تـه رسولی و رادمخه شوه په اوښلنو ستر ګو سره ئې د کشیش په مخ کښی په لوړ آواز سره وویله:-

اې دانسا نانو جلاده! زه ددې دوو ناز نینو مینا نو دقبر جوړولو فخر و ځانته حاصلومه دخدای روی وګوری تـوله ادې خوشبوئی فضا څخه لیری شی ما او خپل کار پرېږدۍ.

ګرده حاضرین ددې له دې زړه ور نوب څخه چه درو حانی پیشوا په مقابل کښی ئې وکړ په تعجب کښی شوه او بیا هر یو د خپل تاتوبی وخوانه په حرکت کښی شو بـعدې وخت کښی سوسنی دعشق او وفا دډاګ پر شهیدانو باندی د عقیدت ګلان نثار کړه او د دوی سرونه ئې پر خپل یاسته زنګانه باندی کښېښوول. «بای»



# د پښتـــــــــانه مرګ

ښاغلی ویران

چه په هند کې د لودیانو حکومت وو
د لودي «بهلول» دوران د سلطنت وو
د لښکرو لوی افسر ئې «فیروزخان» وو
دا پښتون سردار هر کوره پهلوان وو
جنګېدی د زمری په دود غښتلی
یو ولی شخصیت و دا ښاغلی
یوه ورځ ګیر سو په لاس د دښمنانو
هغو بوتی په ټولی د اسیرانو
دده زوی «شاهین‌خان» هم و پدې جنګ کې
لېکن مړ سو په میدان د ناموس ننګ کې
اور هم مړه سوه د فیروز سردار ملګری
د پر سروانه سوله پرې ، نسوانه څیری
د دښمن مشر طلب کړه دا سروانه
بیا ئې وغوښتل ددې ټولو نومونه
فیروزخان ئې را حاضر کی پردې کار
چه نومونه ددې ټولو کی اظهار
«فیروز» هم تېر کړه تر خپل نظر سروانه
او ویل به ئې د هر یوه نومونه

بدې لړ کې ئې را پورته د زوی مرګی
چه ئې وکوت نو ئې نوم صرف نظر کی

دښمن وویل: چه دغه سر د چا دی؟
فیروز وویل: هېر سوی اوس له ما دی

وروسته وویل: څو تورو د ښمنانو
چه دا ځوان ؤ د ډېر غښتلی تر سپالانو

د جنګ خوانه ئې هیڅ شا نه ګرزوله
او پر موږ به ئې وسله ښه چلوله

موږ ونه لیدی تر پایه په جنګ ستړی
په حیرت ؤ چه بریښنا ده، که وګړی؟

غلیمانو چه تمام دغه بیان کی
نو «فیروز» هم دخپل زوی شهرت عیان کی

وویل: دا خو می ځلمی بچی شاهین دی
ده، مرګ ور د تحسین او آفرین دی

دښمن وویل: لومړی ځله انکار سوې؟
څه سبب دی چه بیا اوس په دې اقرار سوې

فیروز وویل: په جګ سر چه دښمنه!
بری ښوول می بې جوابه ستا پوښتنه

ځکه بوه نه وم د خپل زوی په مړانه
ما وې هبادا چه مړ وی په سپیتانه

نو چه دی ځن قربان سوی په غیرت ذی
دا می ډېر لوی افتخار او هم عزت دی

پښتانه د بې ننګی په مرګ شرمیږی
د غیرت په مرګ هر ګوره هوسیږی

زه به داسی د شرف تر مرګ چاریږم
د خپل ګران بچي په مرګ به تل نازیږم

---



ښاغلی محمد ابراهیم
[خواخوږی]

# کوچۍ

## پېغله

کوهګران کلي شمال کې
ارغنداو د رود پر غاړه
کوچنیان وه په غال مغال کې
د کوچو کېږدۍ ولاړه
مرئې پېغله سنبال کې
وې ځلمیه په ما وباړه

لب سیرین، پوډر مې نسته په عفت باندې ښایسته یم
ښښته پېغله یادېږم عصمت داره آراسته یم

نور پودر ني مي پر سر دي — لګ مخ ګرزم هري خوانه
حق ښکاره نن لکه لمر دي — پرڅه سي له ما څه پانه
زما مانۍ او کوږدۍ غړدي — هیڅ احتیاج نه ارم چانه

اما بوهه چه مي نسته په یقین خواره خسته یم
که هر څو د ښښتانه د بڼ نهاله نو رسته یم

بغره نه لرمه ګرانه! — سپېڅلتیا مې توره، ډال دي
نه بیزېږمه له چا نه — ښښتو نواله مې اعمال دي
شرافت باندي اې ګرانه! — زما ټول وجود سنبال دي

آه دژوند ښه پسرلي ژي لېکن جهل په دام بسته یم
حقیقت تر اوهام چار سو دناپوهو ګلدسته یم

ښاغلی فضل محمد [فضلی]

# زړه مې څه غواړي؟



نوری ستر ګی شهلا غواړی زما زړه
د ماهرویو وفا غواړی زما زړه

منکر نه دی ئل له مینې هوښیار اوسی
همېش خپله لیلا غواړی زما زړه

دائې هیله چه مین وی او زخمی وی
له بې دردو فنا غواړی زما زړه

د ځیګر په تاریکی ئې نفس تنګ دی
د سپین مخو رڼا غواړی زما زړه

په ښادی کی هم شرکت کوی ښادمن وی
خوشالی د هر چا غواړی زما زړه

د یتیم او غمزده وو همنوا وی
د هغو تسلا غواړی زما زړه

کله غواړی چه قصاب ئې قصابی کی
کله بیرته دوا غواړی زما زړه

هم درد غواړی هم علاج زه په حیرت یم
چه پر څه هره خوا غواړی زما زړه ؟

چا به داسی لیونتوب لیدلی نه وی
هم نجات هم بلا غواړی زما زړه

له دو رنګو آشنا یانو توبه ګار دی
نه لباس؛ نه دنیا غواړی زما زړه

کله نه کیږی هیڅکله د بې عقلو
کله نه له دانا غواړی زما زړه

دغه زړه دی د [فضلی] د هیلو ډک زړه
چه هم هغه، هم دا غواړی زما زړه

ښاغلی ویران

# قلندر

دمخه تر دې چې دا سری په چا وپېژنو دا خبره د یادولو وړ گڼم چې: موږ د خپلې خاورې په څومره گوښو او کونجو کې شاعران، د ژبې او ادب څښتنان او عالمان لرو چې لکه خزانې تر خاورو لاندې پټ پاتې دي، دا متحدالمآله خبره هم کوم چې د پښتنو د ښمنانو او استعمار پر نو ځلو دوی د برغلو په وجه څه د کورنیو جگړو او بې اتفاقیو په وجه چې همېشه په نې ور سره مخامخ کړي او هېڅ وړي پښتې چې خپل ژوندنه د علمي، اجتماعي او نورو ضروري چارو له پلوه څه سر او سامان ور کړو.

که موږ پخوانی خپلو تواریخو ته اشاره ونه کړو او په لنډ ډول د «نادر افشار» د برغل څخه بیا تر سقوط اړوند پورې چې زموږ درې سوه کلنې ژوند تشکیلوي دا رخت یاد کو آیا لږ علمي او ادبي ذخایر به موږ پیدا به سوي یا له منځه تللي وي؟ آیا لږ عالمان، ادیبان او شاعران به موږ د معدومیت او هېڅ ته ورپورې وهل سوي وي؟.

یا د ولس د بېسوادۍ او بې قدرۍ دلاسه هغسې لکه د دغو علماؤ، شعراؤ او ادباؤ بدنونه چې تر خاورو لاندې دي هم دغسې د دوی قیمتي آثار دلاسه وتلي او را څخه ورک دي، که څه د دې مملکت په هر گوټ کې، د دې هیواد په سمڅو غر کې او د دې وطن په کلو او ښارو کې فاضلان سته، شاعران سته عالمان هم.

خو دا سې سته لکه د بحر په تل کې چې غمیان سته گرندي او نه کړه ملاحان غواړي یعنې د ځوانانو لیکوالو پو اوږد فرصت او پسو متحمل همت غواړي چې دا کار و سر ته ور سوي. خو باید ووایم چې اسانه کار نه دی، د مثال په توگه تقریباً «۸» میاشتې به کېږي چې غواړم د کندهار د یوه نامتو شاعر «شوه» څه بشپړ اثار او هم د ده مکمله سوانح لاس ته راوړم نه یم موفق سوی دا ځکه چې یا فرصت نه وي یا دا چې هر څوك د دې موضوع سره علاقه نه لري کوم کسان چې د دې کار اهل دي هغه بیا د یوه نیمگړي ذوق څښتنان وي، سره د ده، هم د دغو ځوانانو په توجه بې څه هم نه پوهانه سوي.

خپل مراد ته به راوگرځم:-

نن «قلندر» د پښتو ژبې پو خوږ ژبی شاعر د مجلې گرانو لوستونکو ته په لنډ ډول معرفي کوم او دده پېژندگلوي د ښاغلي مولوي کمال الدین په مرسته چې د نوموړي شاعر او عالم شاگرد دی لیکو.

لکه د مخه چې مو وویل چې د دې مملکت ړ هگوټه او غرونه هم شاعران لري نو دادی چې یو له دغو

شاعرانو څخه «قلندر» دی نوموړی شاعر د فتح محمدزی د میر حسن امسی وسپین بولدك ته نژدې د «کوڼچی» نومی ځای اوسېدونکی او په خپله اڅکزی ؤ، قلندر په ۱۲۸۱ ش کال په دغه سیمه کې زوکړی وو کله چې ئې سن وهغه حدته ورسېدی چې زموږ په اصطلاح بایدیو توری زده کړی نو وسبق ته وکمارل شو او په دغه کوچنی والی کې ئې د کندهار د شاوخوا علماؤ څخه په خصوصی توګه عربی، پارسی او هم پښتو تعلیم کاوه د هغه په وروسته د پښتونی هند یا اوسنی پښتونستان و «پېښور او کوهاټ» ته ولاړ پنځه کاله ئې هلته سبق ووایه، دوه کاله ئې په «بهوپال» او پنځه کاله ئې بیا په ډیلی کې تحصیل وکړ د عربی علومو ئې دوره تحصیل او زده کړه وکړه چې د قلندر څخه مولوی جوړ شو او له دې وروسته به ده و خلکو ته درس کاوه د بد مرغه چې مرګ مهلت ورنه کړ په هغه ډیلی کې چې ۱۳۱۱ ش کال ؤ د ۳۰ کالو په سن ځوانیمرګ شو اوس د ډیلی د جامع مسجد په هدیره کې ښخ دی .

دا پښتون شاعر د ډیلی د تعلیم څخه وروسته غوښتل چې د اوړو تحصیلانو په غرض ومصر ته هم سفر وکړی چه کوا کې داهیله ئې هم مرګ ترخاورو ورلاندی کړه .

مرحوم قلندر شعرونه هم ویل د شاعرۍ سره به ئې شوق کړښو وروسته درمعلومه سی البته یو متوسط شاعر به ئې وبولی . خودا سړی پرته لدې چې د پښتو او پارسی ژبې داسې شاعر ؤ چې دیوانونه ئې درلودل او هغه اوس د هندوستان په یوه کتابخانه کې ورك دی د منطق په علم ؤ داسې ملا چې د منطق پر ځینو کتابونو ئې شرحې هم لیکلې دی چې هغه ترا اوسه ندی چاپ شوی او هم ئې څو رسالې جوړې کړې دی .

دې په وروسته چې قلندر کله د شاعر او کله د یوه ملا په حیث وپېژنو، نوموړی په دا علاقه هم سائل چې اخبارونه، مجلې او تاریخ ذی مطالعه کې او د سیاسی اشخاصو سره دی ؤ پېژني .

د وطن په اخیرنی انقلاب کې چې قلندر ژوندی وو په دې مناسبت ئې څه اشعار هم ویلی دی او داسې کورخرابونکی ارضاع ئې غندلی دی نور اشعار ئې چې اخلاقی، اجتماعی او تصوفی هم په کښې موندلی کېږی سته د پر ئې غزلیات دی چه د کتنلو او لوستلو وړ دی .

لدې جملې څخه صرف دا څو پارچې غزلیات چې دده داشعارو څخه مو را بېل کړه د لوستونکو په وړاندې کړو ښائی چې ګران لوستونکی پلوئي خوښ واری :-

## لومړی غزل

ان پر طرف د چمن د بلبلانو ژړا
د ګلو څو کې ده خزان په تیغ د جفا

یم په مثال د مجنون
په رسوائی کې زبون
ځکه صحرا نه بیرون
ګله به راشي لیلا

خال دی د ورځو پر سر
زخمي دی ګرم پر ځګر
بانو دی تېز تر خنجر
را کړه د لبو دوا

ګر زم په سوزو ګداز
ګله شهین ګله باز
دوزخ پر سر د مجاز
د زړه په ورو دلربا

په څه ادب و په ناز
ګله به راشي ایاز
د څنګه ځي د غماز
چه ئې محمود شي ګدا

نه ئې د زړونو صیاد
مدام په بغض ؤ عناد
هسې پر حمه جلاد
قتلوي هر بېګناه

د یار د مینې سقر
زه په نامه «قلندر»
پاس می بلېږي پر سر
وسو افسون دی په ما

## دوهمه

ان بیا شانه ورانه راځي څومره په کبر ؤ په ناز
ژاړی سلطان محمود
رنګ ؤ جمال ئې ممتاز
که ئې بوره سي مقصود

په غلامي که ئې قبول کې زر خریده ایاز
چا څنه کاوه محبت
رنګ ؤ جمال ئې ممتاز
غوا دی آزاد فراغت

د یار له دره پر عشا قو باندی کېږي آواز
مخ ئې کعبه ده زما
رنګ ؤ جمال ئې ممتاز
خط ئې حطیم شاؤخوا

خوله ئې زمزم و تشنګانو ته د اهل حجاز
د عاشقانو خندا
رنګ ؤ جمال ئې ممتاز
د مهرو یارانو وفا

لکه بلبل چه سپین سهار پر ګلو کاندی پرواز
لاندی زنخ کوه طور
رنګ ؤ جمال ئې ممتاز
ورله ور ځمه ضرور

زه «قلندر» لکه موسی ورځم په رازو نیاز
رنګ ؤ جمال ئې ممتاز

## دریمه

چه پر غولی دخاطر د ناز قدم زدی
د دوو سترګو پردو کان ګهردنم زدی
انا الحق هغه منصورو نــه ښائیېږی
چه ئې وېنې پرزمین باندی رقم زدی
دقیامت ترصبح پورت وی به وصال کی
مخمور کله پر زده خیال د صبحدم زدی
بس له مرګه به جنت ته نسی یورته
که په قبر کی دلدار ورسره سم زدی
زلیخا غوندی به وزی لــه عصمته
که پرزره څوك د یوسف دمینی غم زدی
« قلندر » غوندی به دپر دپر څګر خون سی
چه پر زده ئې نهښې ددوو زلفوارم زدی

## څلورمه

احسان دی نن د ما سره سو کم ولی تازه
نهال د زده رېږي به لور د غم ولی تازه
که هرڅومی پټ وساته له خلګوراز دمینی
چغلی کوی تر سترګو د زده نم ولی تازه
خولې د یار دمخ که دعسلو غوندی نه وای
بو را به وړای د ګلو څـــه شبنم ولی تازه
رخسار که دی په مثل د اور نه وای دلربا
زلفان دی سوی تور او پیچ وخم ولی تازه
مجنون غوندی که نه ئې به مرض د عاشقیء
لیلا ئې زدی پرزره باندی مرهم ولی تازه
سټالافی په رشتیا دی « قلندره » په یاری کی
که نه وای، معاون دی سو قلم ولی تازه

## «هلن کلر»

«دا وړم مخ پاته برخه»

دا ئې خپل د مقصود څخه منع نکړله. دا د لوی روح درلودنکي وه یاس (نا امیدي) نشوای کولای چه دا مغلوبه کړي ددې ژوندون ئې کوړ وړ پریشانه کړی ندی دا لکه «غواص» چه غوټې خوري د مصیبتونو د سیند په څپو کښې ئې ډیری غوټې وخوړلې لیکن تسلیم نشوه.

هلن کلر ترا وسه پوري پوولس کتابونه لیکلي او په زرو مقالې ئې په امریکائي اوارو پائي مجلو کښې خپرې شوي او نشر شویدي.

هلن خپل د ژوندون څخه د پرېښه خاطره «زما د ژوندون سرګذشت» په کتاب کښې دا ډول تعریف کړیدی څه وخت چه ما وغوښته او مړی جمله ادا کړم دامې وویل: چاته ګونګه نه یم د پره خوښۍ او خوندمې احساس کړ چه دړدو کتوب په نېټه ی په زړه لوېه خوشحالی پر ما راغلی نه وی او لکه کوچني الوتونکی مرغه ناسی وم چه تازه پرحال راسی او د امر دورانکې وخوانه الوتنه کوی او غواړي چه پر کوم ځخ کښیني؛ هلن کلر د لیك او لوست او سواد زده کړه د تولی نړیه دړندو او ګنګو د پاره میدان ته راوایستله او ئې ورخ ددې خدمت د فرهنګی شخصیت او پوهنی د ارزښت له نقطه نظره بین المللی جنبه لري.

هلن کلر د جهان د ړندو د تعلیم او لوست زده کولو د پاره لار خلاصه کړي نه؛ هم دغه نابغه ښځه چه د بشر عقل ددې و کار و ته حیران پاته دی په ۱۸۸۰ میلادی کال کی زیږیدلې ده او تر نن ورځې پوري ئې د ډیرو ناراحتیو سره په خپل ژوندون کښې په خوشحالی سره ژوند کړی او د ژوندون څخه هیڅ شکایت نه لري.

دا انیا کاله عمر لري او په اثبات ئې رسولی ده چه د بشري د ښنا نو څخه ړوندوالی او ګنګوب او ګونګوالی او زړوالی دی د غو شیانو هم ودې نه هیڅ بهره نده تولید کړی دا ښځه د یوه فوق العاده عزم خاونده ده ټل د بشر خدمت او د خلکو د بهبود او ښه والی په فکر کښې ده د ژړه ټول خلک چه دا پېژني او پاټې ددې کتابونه لوستي او پاتې ددې خبری اتري اوریدلی وی نو هلن کلر یو پاك او سپیڅلی موجود بولی.

---

د انګلیسي څخه دښاغلي م.ن ترجمه او تصرف

## ❊ قطب مینار ❊

د ډیلي په ختیځه مېږای خوا کې ۱۱۰ میله لیري یو لړ یادګارونه دي چي د تاریخي پلوه دلیدو وړ دي لکه د قطب الدین ایبك د قوت الاسلام ماجت او دهغه اړدبکلی مینار د التمش شمس الدین قبر او مدرسه او د علاؤ الدین خلجي الحاقیه خرنګه چې زموږ مراد د قطب مینار دی نو په یوازی دغه تاریخي مینار پسې را واخلو:-

دا مینار خورا لوړ مینار دی چي دهغه د برج څخه یو وخت د پرغل کوونکو د لیدو د پاره کار اخیستل کېدی خو نن ورځ په پوره جهان خاموشي او عظمت سره دډیلي او دهغه د شاؤخوا او سېدونکو وفه الیتو ته ❊

* کوري د نوي اوزوږد بېلې دانه په تماشه کېږي، که څه هم دا منار د ټکو او زلزلو په وجه ناوانې سوی دی سره د هغه هم ده عظمت او ښکلا ن د خلکو زړونه ور کشوي او خلک د لیري لیري ملکو څخه ده و لیدو ته راځي .

دا منار په هغه ماجت اړه لري چې هغه « قوت الاسلام » نومېږي د منار په جوړېدو کې ډېره مطلبه وه بودا چې پر کفارو هیبت پر پیاسي او بل دا چې د اذان زغ ده له ارتفاعاتو څخه براډ کاست سي .

شك سته چې منار په ۱۲۰۰ میلادي کې قطب الـدیـن ایبك جوړ کړیـدی او داسې لیکنه هم پـر سته دامیر د امیرانو ستر قوماندان او د قطب دایالت مشر » خو هندو مذهبو لیکوالو کوښښ کړیدی چې د قطب منار دیوه هندو د لاس نخښه معرفي کې او ددې خبرې دپاره داسې دلائل هم راوړي : وائي پخوا دا منار « پریتوی- ستمپ » نومېدی « پریتوي- راج چوهان » پـه هند کې آخیرنی هندو حاکم و او ده

ددې منار په جـوړېدو سره دخیلې کرانې ماندېنې داهیله « نور نې په ۲۷ مخ کې »

## فوره مال....

« د ۱۵ مخ څخه پاته »

آواز زغوږ شو خوشحالي داسې زور پرو کې چه په پای کښې د لپو تبوب چمونه ځنې کېدله بیای په سم ده د خوښې سره دصلې دزیاتوا امر صادر اوه څو چه په پای کښې شاعرته له ډېري خوښې څخه خوني ځای نه ور کاوه د پاتـ دی ورتی لیکو نکې « منشي » دا وخت غنیمت وګانه و بیای ته ئې مخ راواړاوه اوور ته وې ویله :-

باداره ! دا څه اسراف او بیځایه بخښش دی چه پر نشه قصیده باندې دې دې شاعرته ور کې .

بیای په جواب کښې ورته وویله ته خو ډېره ساده ئې ده پخپلو اشعارو چه ته له دروا غ دې زه خوشحاله کړم مخ مې د څور اسم ته سیوزمې پاېسته و باله او په دلاوري کښې ئې زمري غوندې حیوان ته ما پوري هیڅ ګرځ به مې ئې هومره نېږه تصور کړه چه تور ه لا پر ېکوي او ده ډ ډر ني دروا غو په عوض کې ما په نشو

## کلاسیک څه....

« د نهم مخ پاته »

سوې وي، ادبي سرهسم چه یو اثر ته اساسي انتقادراووزي او د ولس ذوق قضـاوت پـکښې وکړي او بیا ځانته یو معیاري حیثیت پیدا کوي او د عالي ادبیاتو ذوق په خلکو کې پر ژوندیر او لي او پـکښې تیتوي ئې . مثلاً په شوروي اتحاد کې د « پوشـکین » آثار، په فرانسه کې د « راسین » لیـکنې، پـه ایټالیه کې د « پیټرارج » آثار په جرمني کې د « ګویټه » لیـکنې ډېر نامې شاهـکارونه اري چه په ادبیاتو کې کلاسیك ورته ویل کېږي، دا انګلیسې په کلاسیکو آثارو کې د شـکسپیر درامې او د « سپنسر » اشعار او نوري ډېري داسې لیـکنې شاملې دي . « اوویـل » وائـي : یو کلاسیك هیڅـکله نه پخوانی دی نه او سنی بلـکه هر کله داسې نوی دی چه زړ پده نه منی .

وعدو سره دې خوشحاله او له سده وایستي « او یقین ارم چه ده خوشحالي به ته ماسل چندنه ډېره وي . « له خارجي مطبوعاتو څخه ژباړه »

«د ۱٤ مخ پاته»

زړه‌او تجربې او عملیات اړی کښلي دي او داډیسن د مشکلاتو د حل دپاره ئې پوره کومك کړی دی د موادو د کیمیاوي قوانینو ئې ځنې زده کړه او د کیمیاوي عملیاتو دپاره ئې ښه ځان چمتو کی څو په آخر کی ده هم کیمیاوي موادسره تول اوړا اوړول عملیات او تجربې ئې ډېرې وکړې او په خورا کامیابی سره مخ په وړاندې روان وو دلته ئې مور ورته وویل: چه زویه یو لابراتوار جوړ که او هورې خپلې تجربې کوه، ده هم دا خبره خوښه کړه او یو خوار زوړ ور لابراتوار ئې جوړ کی چه هر ډول تجربې پکښې کېدای شوای. اما خبره داده چه د مور او پلار واقتصا-دیاتو ئې فاحش ناوان ورس-وازاوه پداسې حال کی چه دغه ډول ځوانانو به کارونه کول او خپلو پلرونو به ئې پیسې ورکټلې نو دوئ هم پلار وویل: چه زویه ستا تجربې خورا ډېرې دي په مصرف ئې مونږ خواران ته رسېږو، خپله غریبان خلک یو نو کېدی کم

# ټوماس .....

ځای کار ونیوی او پیسې دی وګټلې، خورا په ښه‌وی، هغه‌ۋ چه اډیسن هم داسې په خط کی کار ونیوی، سهار به پر ۷ بجو تللی او د ماښام پر ۹ نیمې بجو به بیرته کورو ته راتی ده دغه کار هم خورا کامیابه ۋ خو د ذوق سره ئې کم تطابق نه درلود په هر صورت ساتی په نږدو کې به ډېرو پیسې به ئې لبز ګټلې او یا ډېری خو خبره داده چه دی مجبوره شو باید بل کار هم ونیسی او تورې روپیه لاهم پیسې وګټی، داڅ چه به د دیترویت کی ئې دوه مرکزه ونیوله یو ئې هغه دګانې کاروو او بل مرکز ئې د سبزیجاتو دوکان، د مزدوران او ملګری ئې نور هم پیدا کړه چه باید ده سره کومك وکی.

دلته اډیسن ښه پوهېدی چه که څه هم پیسې ډېرې ګټم اما داچه د ذوق و پاللو ته نه یم خلاص نو ئې موقع ته کتل او دا به ئې ویل چه باید د کارونه سیك کم یو لابراتوار او یا کمه شخصي کیمیاخانه راوبساسم هغه وو چه کارونه ئې لبز کړه او باقی وخت به ئې ټوله په لابراتوار کی تېراوه هورې به دشپې او د ورځې بخت وو خو سره ددې تولو ئې یو اخبار هم رااېستی چه هره یانه به ئې په دریسېته خرڅوله او په میاشت کی ئې ٤ سوه پانی رااېستی سره ددې تولو کامیابی او فیروزی یا هم و تخنیکی آلاتو او اسبابو ته متوجه شوی دی څو چه ئې د برق په اختراع ځان کامیابه کی.

ښکاره دی چه اډیسن او دده اېجوالاتو د خپلو کورو ترمنځ یو تلګراف جوړ کړ او هغه ئې د یوه فلزی تاره څخه چه یو تلان ئې هم په کار اچولی وه جوړ کړی وو نو هغه وخت چه به اډیسن به ۹ نیمو بجو کورته راغی په هغه وخت کی به ئې د ابجوا-لاتو سره مخابره شروع کړه او خپل احوالات به ئې سره ویل،

اډیسن د بشری ژوند دپاره خورا لوی خدمتونه کړی دی او خورا ډیر اختراعات ئې ما بین ته را ایستلی دی.

وائی چه تر ۱۹۰٤ م کال پوری داډیسن اختراعات وشپږ سوو ته رسیږی او تر ۱۹۲۰ م کال

# قطب مینار

[ د ۲۵ مخ پاتې ]

ترسره کړې وه چې هغې غوښته هر وروځ د بوه خورا اوږدځای څخه د «جمنا رود» وینې خو د مینار بانی هم دغه «پر یتوی راج» بولی نور نو هغه نظریات چې قطب مینار هندوئی تعمیر بولی دادی:-

۱- د مینار د اوړی طبقې دروازه و شمال ته ده چې دا د هندوئی تعمیراتی طرز عنعنوی طریقه ده خو د نورو طبقاتو دروازې ئې پر شرقی خوا مخامخ دی چې دا په خاص ډول د مسلمانانو تعمیراتی طریقه ده.

۲- مسلمانان خپل تعمیرات پر اوږدو پردارو د کانچو جوړوی چې دا د هندوانو کار نه وی او نردې مینار لاندې بوه داسې دکا چه نسته.

۳- په اومړی طبقه کی هغه کنګری هم د هندو مذهب علامات معرفی کوی چې اوس هم تیاری دی، او د مسلمانانو په کارو کی نسته. خو دغه لیکوال سره ددې دلائلو بیا هم وائی: چې البته دا مینار او دا ستره بنا د اسلامی شاهانو په تشویق او ترغیب جوړه سوې ده خو فنی هنرونه ئې د هندوئی انجنیرانو او صنعت کارانو په لاس رسېدلی دی.

داسې هم ویل کیږی چې «شمس الدین التمش» په ۱۲۲۰م کال کی دوهمه او دریمه طبقه جوړه کړې ده، نور طبقات ئې د قبې سره «فیروزشاه طغلق» په ۱۳۵۷م کال کی جوړی کړی دی، دا خبره هم سوې ده چې دا مینار پوروخت «۷» طبقې په ۳۰۰ فټه اوږواله ودان وو اوس «۵» طبقې په «۸» انچ ۲۳۳ فټه » کی پاته دی او «۳۷۹» د پر ېنی څرخنده زینې لری چې د مینار و هغه اوړی برخې ته خلک ورخېژوی ددې طبقاتو اوږواله د هغو د زینو سره په لاندې ډول ویشل سوی دی.

| طبقه | اوږواله | د زینو شمېر |
|---|---|---|
| لاندې طبقه | ۹۵ فټه | ۱۵۳ زینې |
| دوهمه طبقه | ۸ نیم انچ ۵۰ فټه | ۷۸ » |
| دریمه طبقه | ۳ نیم انچ ۴۰ فټه | ۶۲ » |
| څلرمه طبقه | ٤ انچ ۲۵ فټه | ٤۲ » |
| پنځمه طبقه | ٤ انچ ۲۲ فټه | ٤۱ » |
| پنځه طبقې | ۸ انچ ۲۳۳ فټه | ۳۷۹ زینې |

د بیخ په حصه کی مینار ٤۷ فټه قطر اری او د سر په برخه کی ۹ فټه قطر لری، هره برخه د برندې په تو نظر سره جلا کیږی. پدې بنا کی عجیبه نقاشی سته چې هغه د ختیځوالو د پخوانیو انجینرانو پر نېه فن شاهدی ور کوی سرې اعلی د بری چه په نقش او نګار ښایسته دی په اومړیو درو برخو کی کار سوی دی په اوړو دوو برخو کی*

* پوری ئې تعداد و زرو ته رسېدلی دی. چه ترټولو مهم ئې برق، فوتوګراف، مکرافون، ګرامافون، اتوماتیک ټلیفون او داسې نور اختراعات دی. توماس ای اډیسن پسله ډېرو اختراعاتو او خدمتو څخه د عمر پر ۸٤ بم کال په ۱۹۳۱م کی مړ شو.

* کار سوی دی په لوړو دوو برخو کې ئې مرمر کار سوی دی؛ د پنځمې برخې پر سر پخوا یوه گنبته وه چه ۱۰ اچ ۱۲ فټه ارتفاع ئې درلوده دا گنبته یوارد زلزلې په اثر ناوانې سوې او مینار څه نور هم زخمي سوی وو نو بیا په ۱۵۰۳م کال کې لودي اسکندر بېرته ترمیم کړه په ۱۸۰۳ کال کې بیا د زلزلې په اثر راونړېدله بیا هم بېرته [ مېجر رابرټ سمیټ ] چې یو انجینر و په ۱۸۲۸م کال د ۱۷ زرو کلدارو په مصرف جوړه کړه بالاخره په ۱۸۴۸ [ لارډ هارډنګ ] دا گنبته بېرته ابسته کړه او اوس مینار نه ئې ولاړه ده، پر قطب مینار علاوه پر هغه چې د قرآن مجید آیتونه پسته څه نوري لیکنې هم شته چې ترجمه ئې داسې ده:- د پیغمبر صلی الله علیه وسلم وینا دی؛ هغه څوك چې د خدای (ج) دپاره ماڅت جوړوي خدای به دغسې کور په جنت کې ورکی، د دوهمې طبقې پر دروازه ئې لیکلي دي: «د دې تعمیر تکمیل د

التمش په حکم وسو»، د دریمې برخې د دروازې پر سر لیکلي دي: «دغه جوړېدو امر د التمش په وخت کې صادر سو» د پنځمې طبقې پر سر لیکلي دي: «دا مانۍ د فیروزشاه په وسیله جوړه سوه».

لکه دمخه چې مو وویل د دې مینار د سرځخه د دښمنانو قوتونه ښه لیدل کېدل، خلجي او تغلقي باچهانو له دغه لوړ واله څخه د دوست او دښمن قوت لیدلای سوای مثلاً: محمود تغلق د دې مینار د سرځخه د گود تیمور خیمې ولیدلې چې هغه د دهلي د الوتلو په اوسنۍ ډگر کې اډولې وه.

نور نو هر څوك پوهیږي چې دا مینار د یوه ماڅت مینار دی، د یوه مسلمان پښتون باچا په نامه دی، پر مینار د قرآن مجید آیتونه چې په ډېره کې کار سوي دي او نور د پر اسلامي علامات ئې د دې خبرې تصدیق کوي چې دا یو اسلامي یادگار دی.

ښاغلی بېنوا

## د روښانیانو مجاهدې

څه وخت چه ظهیرالدین محمد بابر وفات شو او په ۱۵۳۰ ع کال کښې د هغه زوی همایون په تخت کښېناست، پښتنو دوه گرم تحریکونه په بېلو بېلو سیمو کښې یو په بل پسې شروع کړل.

اول تحریك پخپله د هند په خاوره کښې و چه مشر ئې فریدخان (شېرشاه سوري) وو او مقصد ئې د لودیانو د پښتني کورنۍ له لاسه وتلې پادشاهي راگرځول او د لودي کورنۍ د وروستي پادشاه ابراهیم لودي انتقام اخستل و څوك چه پنځوس زره پښتنو په ملاتړ د بابر په لوړاندې ودرېد او په ۱۵۲۶ ع کال کښې د پاني پت د مشهورې جگړې په میدان کښې د بابر د لاسه ووژلی شو.

دوهم تحریك د پښتنو په خاوره کښې و او هدف داؤ چه د پښتنو قومي یووالی مضبوط شي او د پښتنو یو خپلواك او آزاد حکومت جوړ

شي دي تحریك مشري بایزید
یعني پیر روښان کوله.

شیرشاه سوري لس کاله د همایون
خلاف وجنګېد او خبره دې
ځای ته ورسېده چه په وروستي
جنګ کښي همایون داسې
وارخطا او پېکر شو چه د آس
په شا سپور ئې سیند ته ودانګل
او که نظام نومي مشکي یعني
سقاو پري نوي ښپې شوی نو
دده سیر د غلته تمام ؤ سره ددې
داخبره شوه چه کوم اې ئې سپېلني
اګري ته ورسېد نو د بادشاهي
په تخت ئې دده و نه لګېده او په
ډېره وارخطائي د هند نه افغا-
نستان ته راغی او دلته ئې هم
لدې کبله چه افغانستان د
پښتنو ملك ؤ ګوزاره و نه کړای
شوه او ایران ېلوئي د شاه-
طهماسپ دربار ته مخه وکړه
او څو پوری چه شیرشاه سوري
ژوندی ؤ همغې پوری ئې پا پښتنو
باندی حملې کولو ته زړه
ښه نه کړ.

البته څه وخت چه شیرشاه سوري
په هندوستان باندی د پنځه
کاله بادشاهي کولو نه پس
وفات شو نو همایون د شاه-
طهماسپ په کومك هند ته د

بیار انلو موقع ومونده خو عمر
ئې ورسره وفا و نکړه او یو کال
پس مړ شو.

د همایون په ځای ئې خوارلس
کلن زوی جلال الدین اکبر پر
تخت کښېناست او اکبر د خپل پلار
د انتقام اخستو په وجه د پښتنو
سره خپله دښمني نوره هم
زیاته کړه ان تر دې چه په
۱۵۸۶ ع کښي خپل رضاعي
یعني د ئي ورور زین خان کوکه
ئې د سر لښکر او د خپل دربار
لوی پوهاند راجه بیربل ئې د
نائب السلطنت په حیث د پولوی
او وسله پور لښکر سره د پښتنو
د مځکي د نیولو د پاره وګماره
د اکبر لښکرو د استعماري
غرضونو پوره کولو د پاره او
پښتنو د خپلې خاوری د عزت او
آزادی ساتلو د پاره خونړی
جنګونه وکړل چه اخر ئې د
سوات او باجوړ په تنګو
درو کښي پښتنو د اکبر لښکر
راګیر کړ چاپېر سره د پر بنډو
تورو جنګ شروع کړ او ځینو
پری د غرو د سرو نو نه کږ کنډی
را رغړولي د احمله دومره
هیبت ناکه وه چه پیلان، قچري
او آسونه هم د تور پدل او پو

خوا بل خوا خواره شول.
په دې جنګ کښي راجه بیربل
ووژل شو لوی لوی منصبداران
قتل او انه زره لښکریان مړ
شول یوازې زین خان کوکه
د شپې د تیارې په برکت په تښته
را خلاص شو او په بد کړس ئې
د اکبر دربار ته ځان ورساوه
لکه چه مخ کښي مو ویل د
روښانیانو د تحریك مشر او سر
ویستونکی پیر بایزید پیر روښان
وو دده د پلار نوم عبدالله وو
په قوم اورمړ و او د وزیرستان
کاني ګرم کښي اوسېده.

پیرروښان د علم تحصیل، د ملا
سلیمان کالنجری او ملا پاینده
نه وکړ او بیائي د فلسفې د
زده کړې او نور علم د تکمیل
د پاره هند او د دریاب آمو نه
ها خوا ملکونو ته سفرونه
وکړل.

دی خپل وطن ته پداسی وخت
کښي بېرته و ګرځېد چه دده
د وطن یوه برخه د مغلو یرغل
او تجاوز ښکار شوي وه پیر روښان
یو هوښیار او وطن پرست عالم
ؤ او هغه چیری هم په خپله
خاوره د بېګانه ؤ تجاوز نشو
زغملی او دغه وجه وه چه د

تجاوز کارانو په خلاف را ولاړول . د حیات افغانی نومی کتاب لیکونکی وائی چه:
بایزید به خپلو پیروانو ته ویل چه مغل ظالمان دی او په موږ دېره ناروا کوی نو په کار دی چه پښتانه ددوی دغلامی طوق له خپلو غاړو وباسی او خپله آزادی وساتی .
بدې طریقه پیر روښان کوښښ وکړ چه به نراوښځو، لویو او وړو پښتنو کښی د هندوستان دمغلو دپادشاهی دظلم او تجاوز خلاف نفرت او کرکی جذبات را ولړزوی او ددغی علاقې پښتانه دیرغلګرو خلاف راپاڅوی .
اخوند درویزه هم لیکلی چه: پیر روښان به ویل چه موږ به هندوستان اخلو او د اکبر پادشاه ټولی خزانې زموږ مال دی نو په آسو او سواره شی . او له مانه چا پیر شی .
دخپلو ملی او قومی مقصدو د تنظیم او پوره کولو دپاره پیر روښان باقاعده خزانه لرله او خومره روپلې چه به په جنګونو او جګړو کښی ددهٔ پیروانو لاسته راوستلي دهغو پنځمه برخه به دغی خزانې ته چه د بیت المال په نامه یادېده وسپارله شوه او دغه خزانه به د ضرورت په وخت کښی د رضاء کارو د ضرورت دپاره خرچ کېده پوازی پیر روښان نه ؤ چه د هندی مغلو دامپراتوری د تجاوز خلاف ئې تبلیغ جاری ساته بلکه هغه ددې کار دپاره ګرځېدی او په ګونه شوی خلک لرل چه د پښتنو د وطن سیمی سیمی ته به ئې لېږل او خلک به ئې د تجاوز کارانو خلاف راپورته کول ددغی ډلی په مشهورو کسانو کښی نومیالی عالم ملا پاینده محمد خان کوزی چه لوی خان ؤ روانی د پښتو ژبی لوی شاعر او د هغه دوه ورونه ملا عمر او ملا علی محمد مخلص او ملا دولت مومندزی شامل او د پیر روښان تینګ او غښتلی ملګری ؤ .
پیر روښان اول پېښور او اشنغر ته لاړ او هلته ئې د ملا دولت مومندزی په مرسته چه یو مخور سړی ؤ په غله ډېر کښی دمغولی (صوبه دار چه په کابل کښی ؤ) برخلاف خپل تحریک او ګرم تبلیغ جاری کړ څو لیکلی اعلانونه ئې کابل ته را ولېږل او پښتانه ئې د صوبه دار خلاف پوره کېدو ته راوبلل نو دې چه دغه صوبه دار مجبور شو او آخر ئې د یو لوی لښکر سره د جلال آباد نه په اشنغر حمله وکړه او د څو ورله پسې ئې ټوله پس پیر روښان د تجاوز کارو له خوا ونیوی شو او کابل ته راوستل شو خو دېر ژر د قوم پر سفتو له خوا ایله کړی شو او بیائې د یرغلګرو خلاف په مجاهده لاس پوری کړ .
داخل دی د تیرا غرنی علاقې ته لاړ او هغو پښتنو افرادو ته ئې سخته تنبیه اور کړه څوک چه د هندی مغلو د رشوتونو او منصبونو په لالچ کښی راغلی ؤ تاریخ مرصع وائی: چه دپارلس سوو کسانو چه خپل لاسونه ئې شاته تړلی ؤ ځانونه ئې پیر روښان ته حواله کړل دې نه پس پیر روښان په تیرا کښی ځای ونیو او ددغه ځای نه ئې د یرغلګرو سره مقابله او مبارزه شروع کړه .
د هندی مغلو ایجنټان او ګوډاګیان چه په تیزی سره د پیر روښان د تاثیر خور پدو نه

سخت پړ ورپسې کېښود او په تېره تېره چه څه وخت د پير روښان تاثير د تيرا د غرونو د المو نه نه د يوسفزو علاقې ته هم وغزېده نو ددوی وېره نوره هم زياته شوه او چه کله يې دې يوه شول چه په زور او طاقت سره ددې قومي تحريك مقابله ګرانه خبره ده او چه څومره په ددوی قوت د پښتنو خلاف کار کاوه هغومره به پښتانه په زيات شدت او جذباتي انداز کښې راولاړېدل نو لهٰذي کبله د هندي مغلو د امپراتورۍ په دربار کښې داسې طريقه تجويز شوه چه کومه چه هميشه استعمارچيانو د پښتنو په مقابل د جنګ په طريقه د ناکامۍ نه پس عمل کړی او هغه دا چه پدې قام کښې ئې د بې اتفاقۍ اور ته لمن وهلې او د يو بل سره ئې په جنګ اچولي دي د هند د مغولي امپراتورۍ ګوډاګيانو نالي څتونه هدايت او حکم ورکړی شو چه د پښتنو منځ کښې د بې اتفاقۍ اور ته پوزې ووهي . دې ګوډاګيانو ملا درويزه د خپل پير په اشاره د پير روښان مقابلې ګولونه ولمساوه دې کسانو به

پيرروښان باندې د پير تاريك نوم کېښود هغه ته ئې د کفر نسبتونه وکړل او داسې نورو تړونه ئې پرې ولګول چه :-

ده ښځې هم مريدانې کړې دي او د عبادت په وخت کښې نر ښځې يو ځاى کښېنوي دى د وحدت الوجود د نظر ئې قايل دى او هرڅوك چه دده په حلقه او مريدانو کښې داخل نه دي دى هغوى ته مېړه نه وائي او د هغوى مالونه خپلو مريدانو ته روا بولي او خپل مريدان د هغوى وارثان ګڼي د غسې نورې زياتې خبرې ئې په هغو پورې وتړلې او چېرته چه به ئې دده کتاب خيرالبيان موند هغه به ئې سېزه او دې کښې شك نشته چه دې پروپاګنډو او د مغلي دربار ايجنټانو کوششونو د خلکو په خيالاتو څه ناڅه اثر وکړ خو پيرروښان د مغلو خلاف د خپلې مجاهدې نه لاس وانخست او په خپله اراده ټينګ پاتې شو او د خپل مرکز تيراته ئې د څو زرو سورو لښکر د ځان سره واخست د ننګرهار خواته راوخوځېد او په خپلو دښمنانو ئې حمله وکړه او د پېښور او خوا

علاقې ئې تر لاسه کړې خو څرنګه چه د دښمنانو لښکر او طاقت نه د شاد خوا نه برلاسې او شيبه په شيبه ملاتړ راورسېده او په خپله حسن خان د پير روښان مقابلې ته د ډېر زيات طاقت سره راووت نو نتيجه دا شوه چه د يوې ډېرې زياتې خونړۍ جنګ نه پس د شېنوارو په علاقه تورراغه کښې مغلو ته زيات تازه طاقت ورسېد او ميا روښان چه داوخت ئې ټول قوت ختم شوی و په کالاپاني نومي ځاى کښې جل وواهه او وفات شو .

د مرګ نه پس د هغه لاش مريدانو اوچت کړ او په اشنغر کښې ئې ښخ کړ وائي چه دى په ۹۹۰ او ۹۹٤ هجري کلونو کښې وفات شوی دی .

يو بل روايت دا هم دى چه مريدانو ئې وروسته دده لاش د قبر نه راوايسته په تابوت کې ئې واچاوه او د يو تبرك په څېر به ئې د ځان سره هرچېرته ګرزاوه چه آخر د ملا درويزه د مريدانو په لاس کښېوت هغوى تابوت ته اور واچاوه او د سېځلو نه پس ئې سيند ته ګوزار کړ پير روښان مړ شو مګر د هغوى پاك تحريك دده د مرګ نه پس هم جاري پاتې شو او د پير روښان د څوارلس کلن زوى جلال الدين په خلافت کې ئې لا قوت وموند .

[ نور د مجلې په بله ګڼه کې ]

د ښځو زړه

# څلور شيان

څلور شيان بايد ورو کې وي لکه بزه، غوز، نی او ښځي .

» » » سپين » » غاښ، مخ، نور بدن او د سترګو سپين .

» » » تور » » سترګو رڅی، بانو او وېښتان .

» » » سره » » شونډی، نوکان، بارخوګان، د نی سرونه .

» » » دغرښ دك » » مخ، لېچ، غاړه، او نور بدن .

» » » ارت » » تندی، ټټر، اوږي، او سترګی .

» » » اوږده » » ونه، غاړه، ګوتی، او د سروېښتان .

» » » پـاسته » » لاسونه، مخ، د سروېښتان او نور بدن .

» » » نـري » » شونډی، ګوتی، ملا او ورځی .

» » » واـــړی » عقل، فکر، کورني اهليت او د اقتصاد علم .

» » په باطن کې وي » عصمت، شرم، حيا، او عفت .

» » » ښه وي » ويل، ننګ، اغوستل، او کول .

» » په خپل ذات کې وي لکه: نجابت، تقوا، پاکی، او متانت .

ددي څلورو شيانو سره بايد مينه وي لکه: مېړه، اولاد، دين، او خاوره . [ ناکښه ]

